## پوښتنې:

۱- عارضي مد کوم دی؟

۲- عارضي مد ته ولې عارضي مد وايي؟

۳- کلمي مثقل مد کوم مد ته ویل کیږي.

۴- ولې ورته مد مثقل وايي؟

۵- حرفي مثقل مد څرنګه مد دی؟

۶- د څه وجهې نه په مد حرفي مثقل مسمیٰ شوی دی؟

۷- کلمې مخفف مد:

هغه ته وایي چه د مد توری او سبب یې (سکون) دواړه په یوه کلمه کښې او سکون یې له شده څخه وي لکه په (آلئٰن) کې الف د اولي همزې وروسته د مد توری او د لام سکون یې له شده دی له همدی وجهې نه وړته کلمې مخفف مد وایي.

۸- حرفي مخفف مد:

هغه مد دی چه د مد توری او سبب یې (سکون) یې له شده په یوه توري کښې جمع شوي وي لکه په (ن) کښې

چه د مد توری واو دی په تلفظ کې شته
او سبب یې د (ن) سکون دی دواړه په
یو حرف او هم یې سکون یې له شده دی
نو ځکه ورته حرفي مخفف مد وایي چې
تلفظ کښې (نون) لوستل کیږي .

پوښتنې :

۱- کلمي مخفف مد کوم دی ؟
۲- ولې ورته کلمی مخفف مد وایي ؟
۳- حرفی مخفف مد کوم دی ؟
۴- د څه وجهی نه ورته حرفي مخفف مد
وایي ؟

# دلین مد

دلین د مد توري دوه دي (واو، یاء) چې په خپله ساکن او د مخکني توري حرکت زور وي نو دلین مد اداکیږي.

دلین د مد سبب همزه او سکون دی. لین نرمۍ ته وائي او دا مد هم په نرمۍ سره اداکیږي. دلین د مد مثال چه سبب ئې همزه وی لکه (سُوْءَ) واو ساکن او د مخکني توري حرکت زور دی.

دلین د مد مثال چې سبب ئې سکون وي لکه (عَيْن) چه د مقطعاتو په

په حرفو کښې راغلی (حٰمٓ ٥ عٓسٓقٓ ٥)

او په (مِنْ خَوْفٍ)، د وقف په حال کښې .

## پوښتنې ،

۱ـ دلین مد کوم مد ته ویل کیږي؟

۲ـ دلین د مد توري څو او کوم دي؟

۳ـ دلین د مد سبب څه شی دی؟

# دمد حکمونه

په لنډ مد به آواز د یو الف یعني دوه حرکتو په اندازه کش کول کیږي او په اوږد مد به د دری الفو یعني د شپږو حرکتو په اندازه آواز اوږد کړي شي د مد اداء کول په منفصل مد او په هغه چه سبب ئې عارضي سکون وي جایز دی، او د نورو ټولو مدونو اداکول واجبي او لازمي دي.

پوښتني:

۱- د لنډ مد د آواز اندازه څومره ده؟

۲- د اوږد مد د آواز اندازه څومره ده؟

۳- د کوم مد اداکول واجبي او د کوم مد اداکول جایز دي؟

## تنوین او ساکن نون

ساکن نون هغه نون ته وايي چې حرکت (زور، زیر، پیښ)، ونلري په مخ او یا آخر د اسم، فعل او حرف کې واقع کیږي لکه مَنْ، أَنْذِرْ او داسې نور.

تنوین هغه نون ته وايي چه یوازې د اسم په آخر کښې په تلفظ کښې راځي نه په لیک کښې او په دغو نښو پیژندل کیږي ـًـٍـٌ دوه زورونه دوه زیرونه دوه پېښونه لکه عَلِيْماً عَلِيْمٌ، عَلِيْمٍ کښې.

# دتنوین او ساکن نون حکمونه

تنوین او ساکن نون څلور حکمونه لري؛

۱- ادغام ۲- اقلاب ۳- اظهار ۴- اخفاء

ادغام په لغت کښې داخلولو ته وايي او په اصطلاح د علم قرائت کښې داخلول دیو توري دي په بل توري کښې په داسې شان سره چه ددواړو تورو نه یو شد لرونکی توری جوړ شي اول توری مدغم او دوهم توری مدغم فیه بلل کیږي لکه په (مَنْ یَّوم) نون ساکن وروسته ترې یاء نون په یاء بدل او دواړه (ی) دیو شد لرونکې (ی) په شکل تلفظ کیږي.

# د ادغام ډولونه

ادغام په درې ډوله دی:

۱- ادغام متماثلین: کله چې یو توری د تکرار په ډول یو ځای راشي اول ساکن او دوهم حرکت ولري اول په دوهم کښې ور داخل کړی شي او دواړه نه یو شد لرونکی توری جوړ شي لکه په «مَنْ نَّشَاء» کې اول نون ساکن او دوهم نون زور لري اول نون چې نون کښې ور داخل شي دې ته ادغام متماثلین وایي.

۲- ادغام متجانسین: دوه داسې توري چې له یو مخرج نه اداء کیږي یو د بل پسې په

داسې شان موجود شي چه اول ساکن او
دوهم حرکت لري اول توری په دوهم توري
کښې داخل شي لکه په اِذْظَلَمَ چه ذال
او ظاء له یوه مخرج نه اداء کیږي ذال
ساکن او ظاء زور لري د ادغام په حالت
کې اِظَّلَمَ لوستل کیږي دې قسم ادغام
ته متجانس ویل کیږي.
۳- ادغام متقاربین: دوه داسې توري
چه مخرجونه يې سره نږدې وي بیود
بل پسې په داسې شان موجود شي
چې اول ساکن او دوهم حرکت ولري
لکه لَبِثْتُمْ کښې چې د ث، ت

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# مد

مد په لغت کښې کش کولو ته وايي او د علم قرائت په اصطلاح کښې د مد په توري له يو الف نه تر درې الفو پورې د آواز کش کولو څخه عبارت دی.

## د مد توري

د مد توري (واو، الف، يا) درې دي.

مخرجونه سره نږدې دي دواړه یوځای جمع شوي چې (ث، ساکنه او (ت، پیښ لري نو (ث، په (ت، کښې وړ داخل او لبشتم به ولوستل شي او دې ادغام ته متقاربین وايي.

هرکله چې د تنوین او یا نون ساکن نه وروسته د یرملون، (ی، ر، م، ل، و، ن، د توروڼه یو توری راشي ادغام کیږي په څلورو تورو د یمنو، (ی، م، ن، و، تورو کښې د غنې سره ادغام او په دوه تورو (ل، ر، کښې بې له غنې څخه ادغام اداکیږي لکه په مَنْ یَّشَاءُ کښې له غنې سره

او په مِنْ رَّبهم کښني بی له غنی څخه ادغام اداکیږي خو داهم باید واضح شي چه په څلورولفظو ر دنیا ، قنوان بلیان او صنوان کښې اد غام نشته بلکه اظهار دی .

غُنه ، له هغه آواز څخه عبارت دی چه له خیشوم څخه خارجیږی د غنې مخرج ، د وتلو ځای، خیشوم دی .

خیشوم د پزې آخرې حیصی ته وایي په اخفاء ، ادغام او اقلاب کښې غنه اداکیږي لاکن د ل ، ر ، په تورو کښې نه اداکیږي د غنې اندازه دیوالف سره برابره ده .

پوښتنې:

۱- ساکن نون څرنګه نون ته وايي؟

۲- تنوين کوم نون دی؟

۳- تنوين په کومه کلمه کې راځي او چيرته موجود يږي؟

۴- د تنوين او نون ساکن څو حکمه دي؟

۵- ادغام څه ته وايي؟

۶- ادغام متماثلين کوم ادغام ته ويل کيږي؟

۷- ادغام متجانسين څه رنګه ادغام دی؟

۸- ادغام متقاربين کوم ادغام ته وايي؟

۹- غنه څه شی ده او له کومه ځايه اداکيږي؟

۱۰- د غنې اندازه څومره ده؟

## اقلاب

اقلاب بدلولو ته وايي . له نون ساكن اويا تنوين څخه وروسته چې د (ب) توري راشي اقلاب كيږي ، يعنى ساكن نون اويا تنوين په ميم بدليږي لكه په مِنْۢ بَعْدِ هم مَشَّاءٍ بِنَمِيْم او نورو ځايو كښې نون په ميم بدل شوى لوستل كيږي .

## اظهار

اظهار په لغت كښي ښكاره كولو ته وايي او په اصطلاح كښي د دو تورو جلا كول دي په داسې شان سره چه هر توري بيل او ښكاره ولوستل شي

کلمې د نون ساکن او يا تنوين څخه

وروسته د حلق له توريو نه کوم يو

توری راشي نو اظهار کاوه شي لکه

لِكُلِّ قَوۡمٍ هَادٍ ط اجرا عَظِيمًا ، عَلِيمٌ حَلِيمٌ

لَطِيفًا خَبِيرًا ط او نور وخايو کښی .

تنوين او ساکن نون له وروستنی توري

نه ښکاره او جدا لوستل کيږي .

## اخفاء

اخفاء په لغت کښې پټولو ته وايي او د علم

قرائت په اصطلاح کښې د اظهار او ادغام

ترمينځ ساکن نون او تنوين باندې تلفظ

کولو ته اخفاء وايي .

د اظهار ، ادغام او اقلاب د توروننه
پرته دهجاو دباقي پنځلسو تورو چه کوم
یو توری د تنوین او یا له ساکن نون نه وروسته
راشی اخفاء اداکیږي .

داخفا توري دادي ؛

ت ، ث ، ج ، د ، ذ ، ز ، س ، ش
ص ، ض ، ط ، ظ ، ف ، ق ، ك

د اخفا مثالونه يَنْصُرْكُمْ ، اَنْصَارِ
مَنْ ذَالَّذِى ، مِنْ جُوْعٍ او داسی نور
دي .

پوښتنې:

۱- اقلاب څه شي ته وايي؟

۲- د اقلاب توري کوم دي؟

۳- اظهار څه شی ته ويل کيږي؟

۴- د اظهار توري څو او کوم دي؟

۵- اخفا څه شي ته وايي؟

۶- د اخفا توري څو او کوم دي؟

## د ميم ساکن حکمونه

ساکن ميم درې حکمونه لري:

۱- اخفاء ۲- ادغام ۳- اظهار

اخفاء: هرکله چه د ساکن ميم نه وروسته

د (ب)، توری راشي اخفاء به اداء کيږي

لکه په تَعرِفُهُمْ بِسِیمَاهُمْ کښې چې د ساکن

میم نه وروسته (ب، راغلی او همدا رنګه

په نورو ځایو کښې .

ادغام ؛

کله چې د ساکن میم نه وروسته

بل متحرک راشي اول میم به په دوهم میم

کښې مدغم شي دا قسم ادغام د متماثلینو

داغام له جملې څخه دی لکه په اِنَّکُمْ،

مَّاکِثُوْنَ کښې چې اول میم په دوهم میم

کښې مدغم شویدی .

اظهار ؛

هر کله چې د ساکن میم څخه وروسته د (ب،

# په ماین باندې لاسوهل د سر خطر لري!



د چاپ شمیر: . . . . . . . . .

د افغانستان له پاره تعلیمي پروژه








د یو ان اچ سی آر (UNHCR) په مالي مرسته

چاپونکی: داکبر مطبعه

او م، نه پرته د هجاء کوم بل توري
راشي اظهار به کيږي يعني ميم به
د بل توري څخه ښکاره او جدالوستل کيږي
لکه په:
(اَمْ لَهُمْ سُلْطَانٌ ، لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْن)
او همداسي په نورو ځايو کي.

**نوټ:** د ساکن ميم په اخفا او ادغام کي
غنه شرط ده.

## پوښتني

۱- ساکن ميم څو حکمونه لري؟
۲- په ساکن ميم کله اخفاء کيږي؟
۳- ساکن ميم په کوم حالت کي ادغاميږي؟
۴- د ساکن ميم اظهار کله وي؟

دا توري په يوه کلمه داسې جمع شوي

دي (واي) دوی نه هغه وخت د مد توري

ويل کيږي چه په خپله ساکن يعني حرکت

ونه لري او مخکني توري يې له خپله جنسه

څخه وي لکه واو ساکن د مخکني توري

حرکت پيښ لکه نُوْحِيْهَا

الف ساکن د مخکني توري حرکت زور لکه جَاءَ.

ياء ساکن د مخکني توري حرکت زير لکه سَمِيْعٌ

پوښتني:

۱- د مد لغوي او اصطلاحي معنیٰ څه ده؟

۲- د مد توري څو او کوم دي؟

۳- واو، الف، ياء په کوم حالت کښې د مد توري
گڼل کيږي؟

# دمد قسمونه

مد په دوه ډوله دی:

۱- لنډ مد (مد قصیر)،

۲- اوږد مد (مد طویل)،

۱- لنډ مد: هغه مد ته ویل کیږي

چې د مد له توري څخه وروسته د مد

سبب (سکون یا همزه) موجود نه وي.

په داسي حالت کښي به د یو الف په

اندازه د مد په توري آواز کش

کړی شی لکه په قَالَ، بَصِیْرٌ او

داسي نورو ځایو کښي.

۲- اوږد مد (طویل مد)؛

هغه مد ته وایي چه د مد توري څخه وروسته د مد سبب (سکون) او یا همزه راغلی وي لکه جاء

او داسې توروځایو کښې په اوږد مد به د دري الفو په اندازه آواز کش کول کیږي.

په قال کښې الف د مد توری وروسته تري نه همزه شته او نه سکون نو لنډ مد به پرې اداشي.

۱- په جاء کښې د الف څخه وروسته چې د مد توري دی همزه راغلې ده نو اوږد مد پرې اداکیږي،

پوښتنې،

۱- مد په څو ډوله دی؟

۲- لنډ مد کوم مد ته وايي؟

۳- اوږد مد کوم مد ته وايي؟

داوږد مد اقسام:

۱- متصل مد: هغه مد ته وايي چه د مد توري او سبب يې دواړه په يوه کلمه کښې راشي لکه په سُوٓءٓ، بَصَآئِرُ، جِيْٓءَ او نورو ځايو کښې.

منفصل مد؛

هغه مد ته ویل کیږي چه د مد توری په یوه کلمه او سبب یې په بله کلمه کښې راغلي وي لکه په قَالُوْٓا اٰمَنَّا فِیْٓ اٰذَانِهِمْ ، مَآ اُنْزِلَ او داسې نور.

د متصل مد اداکول د قاریانو په اصطلاح واجب او د منفصل مد اداکول جایز دي.

۳- لازمي مد؛ هغه مد ته وایي چه د مد سبب (سکون) لازمي وي لکه په قٓ الحَآقّه ، ولا الضّآلین او داسې نور.

پوښتني:

۱- متصل مد کوم مد ته وايي؟

۲- منفصل مد کوم ته وايي؟

۳- لازمي مد کوم ته وايي؟

## ۴- عارضي مد:

هغه مد ته وايي چه سبب يې عارضي سکون وي يعني په خپله تورى په اصل کښې متحرک وي خود وقف له کبله پرې سکون راغلى وي لکه په نَسْتَعِيْنُ کښې ياء ساکنه مخکې ترې زير او نون متحرک دى پيښ لري د وقف له وجهې

نه عارضي سکون پرې راغلی دی نو

مد هم عارضي دی همداسې په

ګافِرُوْن ، يُوْقِنُوْن اونوروځایو

کښی.

## ۵- کلمی مثقل مد:

هغه مد ته وایي چه د مد تورې

او سبب يې (سکون) دواړه په یوه

کلمه کښې خو سکون په یوشد

لرونکی تورې وي لکه په (دآبّة)

اونورو ځایو کښې.

## ۶ - حرفي مثقل مد؛

هغه مد ته وايي چه د مد توری او سبب يې (سکون) دواړه په يوه توري کښې راغلي وي لکه په الٓمّٓ چه لام کښې سکون او د مد توری دواړه راغلي، دي مد ته څکه حرفي وايي چه په يوه توري کې دی او مثقل ورته وايي څکه چه سکون يې په شد لرونکي توري کښې دی . شد سخت او دروند اداکيږي .

ارزیابي کړي.

۱٤- ښوونکی ته لازمه ده چی د زده کوونکو په منځ کي د ښه نیت او ورور ولی فضا برابره کړي.

۱۵- ښوونکی باید خپلو زده کوونکو ته په تدریس کې برخه ورکړي.

۱٦- ښوونکی دی ددرس دمؤثره کیدوپه خاطرخپل زده کوونکي وپیژنی.

۱۷- ښوونکی دی ددرس په پای کی زده کوونکو ته دپوښتنو کولو حق ورکړي.

۱۸- ښوونکی دې زده کوونکو ته کورنۍ وظیفه ورکړي.

۱۹- ښوونکی دې په تدریس کې له محیطي، ساده او ارزانو مواد و څخه ګټه واخلي.

۲۰- ښوونکی دې په داسی ډول د زده کوونکو پوښتنوته ځواب ورایی چی په راتلونکي کي د دوی د پوښتنو کولو استعداد کمزوری نشي.

۲۱- ښوونکی دې زده کوونکي و پوهوي چی ددی کتاب تمرینونه خپلو کتابچوته نقل او هلته دې حل کړي.




# تجوید

## د پنځم ټولګي لپاره




لیکوال: مولوي دوست محمد «فیضي»

۱۳۷۶ کال

# تجوید

## دپنځم ټولګي لپاره

لیکوال: مولوی دوست محمد «فیضی

کال: ۱۳۷٤ هـ. ش

بسم الله الرحمن الرحيم

## سریزه

په هیواد کی د اسلامي انقلاب له بریالیتوب راوروسته د هیواد په ټولنیز رغښت کې اساسي بدلونونه رامنځ ته شول. له دی اساسي بدلونونو او ټولنیزوځرگندو غوښتنو سره سم د ښوونې او روزنې وزارت وپتیله چې د ښوونځیو تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې په برخه کې د اسلامي دولت له پالیسیو او اهدافو سره سم د اسلام دسپیڅلي دین پر اساساتو و دروي. له همدې امله نوی تعلیمي نصاب جوړ او د لازمو پړاوونو له تیرولو وروسته په عمل کښی پلی شو.

د نوی تعلیمي نصاب پلی کولو دا اړتیا رامنځ ته کړې چې په دغه نصاب کې شامل مضمونونه د نویو مفرداتو له مخې له سره تدوین او تألیف شي. له نیکه مرغه د جهاد په څوارلس کلنه موده کې د هیواد د اولاد د سمو روزلو په خاطر یوشمیر درسي کتابونه د تعلیمي مرکز له خوا له هیواد نه بهر (پیښور کې) تدوین او تألیف شوي وو. دې کتابونو د حجم او محتوا له مخې د هغه وخت له غوښتنو او شرایطو سره سمون درلود، خو د اسلامي دولت له بریالیتوب را وروسته زمونږ د ټولنې د څرگندو اړتیا وو او په هیواد کې د ښوونې او روزنې د مرکزی سیستم له مخې باید ددې کتابونو په متن او محتوا هر اړخیزه نوی کتنه وشي. له همدې امله د ښوونې او روزنې دوزارت د تالیف او ترجمې ریاست و گمارل شو چې د تعلیمي مرکز د ماهرانو او لیکوالو په مرسته موجوده کتابونه د نویو مفرداتو له مخې چې دواړو خوا و مخکې له مخکې چمتو کړي وو، له سره وگوري او په هغو کې لازم تعدیلات او سمون راولي ددی کار لپاره د دواړو لوریو د ماهرانو

او علمي غرو يو ګډ کميسون په کار پيل وکړ.

د کميسون غړو د نوو مفرداتو له مخې له اول ټولګي څخه تر دريم ټولګي پورې په درسي کتابونو له سره کتنه وکړه او په هغو کې د اسلام د سپيڅلي دين له اساساتو، د افغانستان د اسلامي دولت د پاليسۍ او فرهنګي اهدافو سره سم او د افغاني ټولنې د غوره ارزښتونو په نظر کې نيولو سره، د علمي او فرهنګي معيارونو پربنسټ، په ملي او بين المللي سطح د هيواد د بچيانو د ښوونې او روزنې لپاره لازم بدلونونه راوړل شول. د پورتنيو غوښتنو له مخې يې دمضامينو په مفرداتو له سره په نوې کتنې سره ددرسي کتابونو متن او محتوا اصلاح کړه. په همدې ډول د تعليمي مرکز د مؤلفينو او د تأليف او ترجمې د رياست د ديپارټمنټونو د غړو له خوا په ګډه سره له ٤ څخه تر ١٢ ټولګي پورې په درسي کتابونو نوې کتنه وشوه او په هغو کښې لازم بدلونونه راوړل شول.

هيله لرو چې دا هلې ځلې، پدې سره په پوهيدلو چې د درسي کتابونو تجديد نظر يوه اوږده پروسه او له پلې کيدو څخه مخکې د ازمايښتونو او د تجربو د سرته رسولو مستلزم ده، د کار پيل وي او د لوی خدای جل جلاله په مرسته خپلو سپيڅلو اهدافوته ورسيږو. هيله مند يو چې د هيواد دمحترمو پوهانو، مسلکي شخصيتونو ښوونکو او نورو مينه والو هر اړخيزې مرستې او رغنده وړانديزونه زموږ ددې کار د بشپړ بری ضمانت وکړي.

و من الله توفيق

د تاليف او ترجمې رياست

د ښوونکی لپاره لارښود:

۱- ښوونکی باید له پاکو جامو سره ټولګي ته ننوځي.
۲- ښوونکی بایدټولګي ته له ننوتومخکې درسي پلان ولري.
۳- درسي پلان باید د درسي ساعت مطابق جوړ شي.
۴- ښوونکی باید په تدریس کې له ډول ډول روشونو څخه کار واخلي.
۵- ښوونکی باید په ټاکلي وخت ټولګي ته داخل شي.
۶- ښوونکی باید خپل ځان د یو همکار په توګه زده کوونکو ته وروپیژني.
۷- ښوونکی باید ټولګي ته د ننوتو په وخت کی سلام واچوي .
۸- ښوونکی باید د نوی درس په پیل کی بِسمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیم ووایي.
۹- ښوونکی باید د تدریس لپاره ښه فضا برابره کړي.
۱۰- ښوونکی باید دزده کوونکو حاضري واخلي.
۱۱- ښوونکی باید د زده کوونکو کورنی کار وګوري او اصلاح یې کړي.
۱۲- د (کلمو الناس علی قدر عقولهم)مقولی په نظر کې نیولو سره ښوونکی باید د زده کوونکو له سویې سره سم درس ورکړي.
۱۳- ښوونکی باید د تدریس په وخت کې خپل زده کوونکي